# اولاد د روزنې ۱۳۰ لارې چارې

ليکوال:

دکتور أحمد المزيد

ژباړن:

أمير حمزه الأحمدي

هيواد والو د ديني پوهاوی باورې سرچينه

لارښود علمي بنسټ
Larkhud Library

الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

Www.larkhud.com

# یادونه:

په ټولنیزو رسنیو کې د اسلامي لارښود سایټ د نوم په یادونې سره هر چاته دکتاب نشرولو اجازه ده، خو په کتاب کې بدلون او تغیر راوستل او یا په خپل نوم د خپلې لوګو سره خپرول اخلاقي جرم دي، باید ډډه ترې وشي.

لارښود علمي بنسټ
Larkhud Library

**په درنښت**

**د اسلامي لارښود سایټ اداره**



الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

د چاپونې ټولې رښتې د ژباړن سره خوندي دي

# د کتاب ځانګړنې

---

د کتاب نوم: اولاد د روزنې ۱۳۰ لارې چارې

لیکنه : دکتور أحمد المــــــزید

ژباړن : أمیر حمزه الأحمدي

کمپوز : ژباړن

چاپ کال : ۲۰۲۰م

چاپ شمېر: ناچاپ

خپرندوی: اســـلامي لاربښود ســـایټ




هیواد والو د دیني پوهاوی باورې سرچینه

Www.larkhud.com

الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

الحمد لله رب العالمين، والصلاة والسلام على أشرف الأنبياء والمرسلين محمد وعلى آله وصحبه ومن تبعه بإحسان إلى يوم الدين.

ټول حمدونه، ثنا صفتونه يواځې الله لره دي، رحمتونه او سلامتيا دې په هغه چا وي چې د پيغمبرۍ لړۍ پرې پای ته رسيدلې ده.

د کوچنيانو روزنه او تربيه داسې يو هنر، مهارت او لاسته راوړنه ده چې د ډيرو لږو خلکو سر پرې خلاصيږي او ورباندې پوهيږي. په دې موضوع کې لسګونه لنډ او اوږده، کوچني او ستر کتابونه ليکل شوي دي.

مونږ دا ښه وګڼله چې له دغې کتابونو څخه د ځينې کتابونو لنډيز ذکر کړو، تر څو دهغوي د فايدمنو او ګټه ورو فکرو څخه روزونکي او مور پلار د خپلو کوچنيانو په سمه او سالمه روزنه کې ګټه واخلي

پيل د عقيدې څخه کوو.



الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

## ۱ د ماشوم د عقیدوي روزنې لارې:

۱- بچي ته دې د توحید کلمه د نفي او اثبات د معنا سره ور زده کړه ؛ (لا اله) ـ د الله پرته له بل چا څخه د خدایتوب نفي ، (إلا الله) یواځې الله لره د عبادت ثابتول.

۲- د کومې موخې لپاره چې مونږ پیدا شوي یو، هغه ور زده کړه (و ما خلقت الجن والإنس إلا لیعبدون) ـ ژباړه : ما انسانان او پیریان نه دي پیدا کړي مگر د خپلې عبادت لپاره.

۳- ماشوم په اور ، عذاب ، د الله تعالی په غوسې او سزا سره یې ډیر مه ډار وه، داسې نه چې په ذهن کې یې د الله تعالی یادونه له دې ویروونکې بڼې سره وتړل شي.

۴- ماشوم الله تعالی سره په ډیره مینه، محبت سنبال کړه؛ ځکه چې الله تعالی هغه ذات دی چې مونږ او تاسو ټول یې پیدا کړي یو ، روزي ، خوراک ، څښاک یې را بخښلی ، ابرو مو ساتي، او په اسلام یې عزت رابخښلی دی.



الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

۵- په پټه او یواځیتوب کې یې د ګناهونو کولو څخه وویروه؛ ځکه الله تعالی په هر حالت کې مونږويني.

۶- په کومو جملو او عباراتو کې چې د الله تعالی ذکر او یاد ډیر وي هغه ور وښایه؛ د بیلګې په ډول د خوراک ، څښاک، وتلو او ننوتلو په وخت کې (بسم الله) ویل ، د خوراک په پای یا د خوراک نه د فارغیدو په وخت کې (الحمد الله) ویل ، د تعجب په وخت کې بیا (سبحان الله) ویل، او همداسې نور عبارتونه او کلمې.

۷- بچي ته دې د پتمن پیغمبر محمد صلی الله علیه وسلم مینه او شخصیت ور وښایه ، د هغه د ښو صفاتو په ښوونې ، د نبوي سیرت له کیسو څخه یو نیمه د هغه په وړاندې وشي، همدارنګه هر کله چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم یادونه وشي نو په هغه باندې درود ویل بچي ته عملي زده کول.

۸- بچي ته د قضاء ( د الله تعالی فیصله ) او قدر ( تقدیر ) عقیده په سر کې کیناوه ؛ الله تعالی چې وغواړي هغه کیږي ، او هغه څه چې الله یې ونه غواړي نه ترسره کیږي.


الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

۹- بچي ته دې د إيمان شپږ ستنې(ارکان) ور وښايه.

۱۰- د عقيدې په تړاو ترې ځينې پوښتنې وکړه ، د بيلګې په ډول

رب دی څوک دی ؟

ستا دين کوم دی؟ يا په کوم دين يې ؟

پيغمبر يا نبي دې څوک دی؟

مونږ د څه موخې لپاره پيدا شوي يو ؟

کوم ذات مونږ ته روزي ، خوراک ، څښاک او روغتيا راکوي ؟

د توحيد ډولونه کوم دي ؟

شرک ، کفر او نفاق څه دي؟

د منافق ، کافر او مشرک سزا او انجام څه دی ؟

لارښود علمي بنسټ
Larkhud Library



الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

## ۲ په عباداتو د ماشومانو روزنه

۱۱- بچي ته دې د إسلام پينځه بيناوې ور زده کړه.
۱۲- بچي په لمونځ عادت کړه - خپلو بچو ته په اوه کلنۍ کې په لمونځ امر وکړئ ، او په لس کلنۍ کې يې بيا پرې ووهئ -.
۱۳- ماشوم له ځان سره جومات ته بوزه، دا ور وښايه چې څنګه اودس وکړي.
۱۴- د جوماتونو آداب ، درناوی ، او پاکوالی ور وښايه.
۱۵- کله کله پرې روژه نيسه، تر څو د لوي والي په وخت کې ورسره روږدي وي.
۱۶- د قرآن کريم ، نبوي آحاديثو او صحيح اذکارو څخه يې يو څه اسانې برخې ته وهڅوه ، تر څو د يادو يې زده کړي.
۱۷- ماشوم چې دې کله هم په د قرآنکريم په حفظ کې پرمختيا يا ترقي کوي نو په يوه جائزه يې ونازوه ؛ ابراهيم بن ادهم وايې چې ـ ما ته مې پلار وويل: ای زما ځويه حديث زده کړه ، هر کله چې



الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

تا یو حدیث واوریده یا دې ورته غوږ ونیوه، بیا دی زده کړو، زه به بیا یو درهم درکوم.

فرمایي: په دی طریقې سره ما آحادیث زده کړل.

۱۸- بچی دې په زیات حفظ ، په یادو یادونه او لوستنه باندې مه ستړی کوه ، تر څو دغه کارونه ورته سزا ښکاره نشي، نو بیا به ورته د قرآن کریم حفظ بد ښکاري او زړه به یې ورته نه کیږي.

۱۹- ته د خپلو بچو نمونه او لارښود یې ؛ نو که چیرې ته خپل عبادت سپک گڼې یا په کې سستوالی کوې ، یا درته بوج ښکاري ، نو بچي دی بیا ستا لاره نیسي، هغوي ستا څخه اغیزمن کیږي ، نو عبادت به بیا په ځان بوج گڼي، شاید چې بیا ترې د تیښتې لار هم غوره کړي.

۲۰- ماشوم دې په صدقه او خرچه ـ باندې روږدي کړه ، داسې چې کله کله ته صدقه کوې او هغه دې ویني ، یا هم ته ورله یو څه پیسې ورکړه چې یو فقیر سوالگر ته یې ورکړي ، او له دې ښه خبره بیا داده چی ته یې دی ته و هڅوې چې له خپل هغه ځانگړي مال څخه چې هغه یې زیرمه کوې صدقه وکړي.



الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

## ۳ د ماشومانو د اخلاقي روزنې لارې چارې

۲۱- که چیرې ته غواړې چې بچی دې ریښتونی وي ، نو په زړه کې ورله ویره او ډار مه اچوه.

۲۲- لومړی خپله ریښتیا وایه چې تر څو بچی دې له تا ریښتیا زده کړي.

۲۳- د ریښتینولۍ او امانتدارۍ غوره والې ، فضیلت ورته بیان او څرګند کړه.

۲۴- د بچي امانتداري دې د هغه د خریدو پرته وازمایه.

۲۵- ماشوم دې په صبر او حوصلې روږدي کړه ، د بیلګې په توګه کله کله پرې روژه نیسه، او یا هم ځیني نور داسې کارونه چې صبر ، زغم او سړې سینې ته اړتیا لري.

۲۶- د خپلو بچو تر مینځ دې عدل او انصاف کوه ځکه چې دا هغوي ته د انصاف یا عدل ښودنې یوه ښه وسیله ده .



الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

۲۷- ماشوم دې په ځان باندې بل ته د لومړيتوب ورکولو په خوي باندې روږدي کړه ، د ايثار عادت د پلي دريزنو له لارې ، يا هم د ځينې هغه کيسو له لارې چې د إيثار (بل له په ځان باندی لومړيتوب ورکول ) غوره والي په کې شتون ولري.

۲۸- بچو ته دې د درغلۍ ، دهوکې ، لومې ، غلا او درواغو بدې يا ناوړه پايلې څرگندې کړه.

۲۹- که ماشوم دې په ځينې دريزونو کې زړورتيا ـ شجاعت ـ ښکاره کړ نو په دغې کار يې وستايه، انعام ورکړه ، او ورته څرگند کړه چې زړورتيا ـ شجاعت ـ دا دی چې ته هغه څه سرته ورسوي چې سم او اړين وي.

۳۰- ډيره سختي مه کوه ، تر څو دې بچي ستا د ويرې، درواغو او بزدلۍ په لور گام پورته نه کړي.

۳۱- بچي ته د عاجزۍ، نرمښت او د لويۍ د پرېښودو اخلاق ور زده کړه.

۳۲- ماشوم په دې وپوهوه چې انسانان په يو بل باندې په تقوی او نيک عمل سره بهتري مومي ، نه په نسب ، خيل او مال سره.



الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

۳۳- دا ور زده کړه چې د تيري ـ ظلم ـ انجام يا پايله ترخه وي ، او سرکشي بيا خپل څښتن را پرځوي ، او خيانت يا درغلی سړی تباهی ته راکاږي.

۳۴- د ځينو شيانو او اخلاقو ترمينځ توپير ور زده کړه، لکه د زړورتيا ( شجاعت) او سرسريتوب يا بی احتياطی ـ تهور ـ تر مينځ توپير ، د حياء او خجالت تر مينځ توپير ، د عاجزی او ذلت تر مينځ توپير او همدارنګه د زيرکتيا او دوکې يا لومې ترمينځ توپير.

۳۵- بچي دې په پت او عزت ساتنه روږدي کړه، په کور کې د نورو سره ښې اړيکې وپاله، د عزت په قدر يې پوهه کړه.

۳۶- هيڅکله له ژمنې او تعهد څخه مه ورو‌سته کيږه، په ځانګړي توګه له بچو سره، ځکه دا په ماشومانو کې تعهد او ژمنتيا پياوړي کوي .



الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

## ٤ د ماشومانو په ادابو د روزنې لارې چارې

۳۷- په بچو دې سلام اچوه.

۳۸- د بچو په وړاندې دخپل عورت په ښکاره کیدو کې سستي ، یا بې پروایې مه کوه.

۳۹- خپلو گاونډیانو سره ښه رویه او چلند کوه چې ماشومان یې وگوري.

۴۰- بچې ته دې د گاونډي حقوق او هغه ته د ضرر یا تکلیف رسونې خطر ور وپیژنه.

۴۱- له مور او پلار سره دې نېکي او ښه چلند کوه ، خپلولي پاله ، او په یاد کار کې دې ماشومان له ځانه سره ملگري کوه.

۴۲- بچې دې په دې خبر کړه چې خلک مودب مهذب او ښه خوي او چلند والا کوچنیان خوښوي ؛ چې نورو ته تکلیف یا زیان نه رسوي.



الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

۴۳- زوي ته دې یو داسې خط ولیکه چې په هغې کې ځینې آداب ، نصیحتونه یا خیر خواهي او وصیتونه ځاي پر ځای شوي وي.

۴۴- دا هم بچو ته ښکاره کړه چې ځیني خویونه او اخلاق په مکمله توګه سره بد او ناوړه دي ، او دهغې لاملونه هم ورته په ډاګه کړه.

۴۵- له بچو سره دې کېنه، هر ځل ناسته کې د نبوي آدابو څخه یو آدب د ماشومانو مخکې لوله، بیا ترې پوښتنه وکړه چې زمونږ په کې څه ګټه ده ، او داسې بیا هم کولای شي چې ځوي دې لولي او ته ورته غوږ یې.

۴۶- ځوي ته دې لارښوونه او نصیحت پټ کوه، او د نورو وګړو په وړاندې سزا مه ورکوه.

۴۷- ځوي دې تر خپل توانه او وسه ډېر مه پړ او ملامت کوه.

۴۸- مخکې له دې چې د ځوي کوټې ته ور ننوځې، اجازه ترې وغواړه؛ ځکه چې دا کار بچې ته د اجازت غوښتنې د زدکړې لپاره یوه ښه وسیله ده.



الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

۴۹- ددې ارزو او هیله مه کوه چې زوي دې په هغه څه چې ته يې غواړې د لومړي ځل لپاره پوه شي او سرته يې ورسوي، بلکې صبر او زغم ته اړتيا لري: (وأمر أهلك بالصلاة واصطبر عليهما)
ژباړه: خپل کور والا ته دې په لمونځ امر کوه، په دی کار باندې ټينګ شه او صبر پرې کوه.
۵۰- د خوراک په پيل کې (بسم الله) او وروسته ترې (الحمدالله) په اوچت آواز يا داسې آواز سره چې واوريدل شي هرومرو ووايه.
۵۱- د ځوي په ځينو تيروتنو دې سترګې پټې کړه ، خو ټټر دې بيا د هغه د تيروتنو د خوندي والي لپاره ټاټوبی او خزانه مه ګرځوه.
۵۲- کله چی تيروتنه وکړی نو له بچي دی بخښنه وغواړه.
۵۳- ماشوم کوښښ کولو ته وهڅوه، داسی ورته ووايه: چې زه پوهيږم چی ته يو تکړه هلک يې او ته دا توان لري چی دغه کار تر سره کړي.
۵۴- بچو ته د ځانګړي مقام احساس ورکړه.
۵۵- د بچي په خبرو او کړنو پسې مه خانده.



الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

۵۶- ځوي ته دې د مبارکۍ، او روغبړ ادبي او خواږه عبارتونه ور زده کړه.

۵۷- د بچي نه د هر څه په اړه د دليل يا لامل په غوښتلو کې مبالغه او د کچې زياتوالی مه کوه.

۵۸- ماشوم دې په پيسو باندې په کار کولو مه روږدي کوه، ځکه چې ياد کار يې د پيسو په وړاندی شخصيت کمزوری کوي.

۵۹- ځوي دې خپل لومړی ملګری جوړ کړه .






الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

## ۵ د ماشوم د بدني جوړښت د روزنې لارې چارې

۶۰- ځوې له دی د لوبو یا مستیو لپاره پوره وخت ورکړه .

۶۱- ځوې ته ګټورې لوبې او مستۍ ور پوره کړه .

۶۲- پریږده یې چی ځینې مستۍ د ځان لپاره خپله وګماري .

۶۳- ځوې ته دی لامبوځنې ، منډه او ځینې نورې د پیاوړتیا لوبې ور زده کړه .

۶۴- پریږده چی ځوې دی په تا باندی په ځینې مستیو کې بر لاسی وي .

۶۵- ځوې ته دی په برابره کچه خواړه ور کوه .

۶۶- د ځوې د خوړو په ترتیبولو دی زیات پام کوه .

۶۷- ځوې دی د خوړو په خوړلو کې له ډیروالي ځخه ووېروه .

۶۸- د خوړو د خوړلو په وخت کې دی د ځوې سره د تیروتنو حساب مه کوه .

۶۹- هغه خواړه پخوه کوم چی ستا د ځوې تل خوښ راځي .



الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

## ٦ د ماشوم نفسي او روحاني روزنې لارې چارې

۷۰- ځوي ته دې په ښه توګه غوږ نيسه او هره کلمه او لفظ چې د هغه د خولې څخه وزي، پام ورته کوه.

۷۱- ماشوم دې پرېږده چې د خپلو ستونزو او مشکلاتو په وړاندې خپله ودرېږي ، دهغه د علم او خبريدو پرته مرسته ورسره کولای شی.

۷۲- د ماشوم درناوې کوه ، او کله يې چې هم يو کار په ښه توګه سرته ورسوي نو مننه ترې وکړه.

۷۳- ماشوم دې سوګند ته مه اړ کوه، بلکې ورته ووايه: پرته له دې چې ته سوګند وکړې زه تا رښتونی بولم .

۷۴- د ګواښ ، زوروني او ځينې له کلماتو يا عبارتونو څخه ډډه وکړه.

۷۵- ماشوم دې په دې مه پوهوه چې ګويا که هغه ناوړه يا بد شخص دی ، او يا هم غبي يا بې درکه دی چې په هيڅ نه پوهيږي.



الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

۷۶- د ځوي له ډېرو پوښتنو دې سينه مه تنګوه، کوښښ وکړه چې هرې پوښتنې ته چې هغه يې له تا کوي نرم ، پوره ، پراخه او قناعت ورکوونکی ځواب ورکړي.

۷۷- زوي دې سينې ته نږدې کړه او په مينه شفقت او همدردۍ يې وپوهوه.

۷۸- په ځينې چارو کې دې له ځوي رايه واخله او رايه يې بيا پلې کړه.

۷۹- ماشوم له دې په ځينې چارو کې د پريکړې په کولو کې تر يوې کچې ازادي ورکړه .

لارښود علمي بنسټ
Larkhud Library



الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

## ۷ د ماشوم د ټولنيزې روزنې لارې چارې

۸۰- بچو له دې په اوړنې مرکزنو ، د قرآن کريم د يادونې په حلقو ، علمي مسابقو او همدارنگه د مهارتونو د را برسېره کېدو په کمپونو کې نوم ليکنه وکړه ، او همدا راز نور فعاليتونه .

۸۱- ځوي دې پرېږده چې خپله د ميلمنو عزت ، درناوې او پت وکړي ، داسې چې ميلمنو ته يو څه چاي ، قهوه او ميوه وړاندې کړي .

۸۲- کله چې له ملگرو سره ناست يې او ځوي دې سوب شي نو ښه راغلاست ورته ووايه .

۸۳- ځوي دې پرېږده چې د ټولنيز جومات په فعاليتونو کې ونډه واخلي ، لکه د کونډو او يتيمانانو صندوق يا تاخچه .

۸۴- ځوي دې په کار ، پير ، پلور او په حلاله مزدورۍ يا حلال کسب باندې روږدې کړه .

۸۵- ځوي داسې جوړ کړه چې تل د نورو په دردونو وپوهيږي او له هغوی څخه يې د کميدو زيار وباسي .



الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

۸۶- څوي دی داسی مه گرځوه چې د ټولې نړۍ غمونه په ځان بار کړي .

۸۷- څوي ته دی د خپل ټولنيز کار ثمره او فايده ور په ډاگه کړه .

۸۸- څوي دی د ځينو اړتياوو د پوره کولو لپاره ليږه يا استوه ، او په هغه باندې ستا بروسه ، باور او اعتماد ورو ښايه .

۸۹- څوي دې له دې مه منع کوه چې خپل ملگری خپله وگماري ، او پرته له دې چې خبر شي ته کولای شی چې داسې يې جوړ کړی چې هغه څوک و گماري چې ته يې غواړی .

لارښود علمي بنسټ
Larkhud Library



الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

## ۸ د ماشوم روغتيايي روزنه

۹۰- د بچو روغتيا ته دې پام کوه.

۹۱- واکسين له خپل وخت څخه مه ځنډه وه .

۹۲- د درملو په ورکولو کې له معلومې کچې زياتوالی مه کوه.

۹۳- ماشوم دې په شرعي دمونو دم کړه.

۹۴- بچي دی له وختي بيده کيدو او له وختي بيداريدو سره روږدي کړه .

۹۵- ځوي ته دې داسې روزنه ورکړه چی د ځان، غاښونو او کالو پاکوالي ته پاملرنه وکړي.

۹۶- د دې انتظار مه کوه چی تر څو ناروغی سخته اومنګولې کلکې کړي.

۹۷- بچي دې له هغه چا ليرې ساته چې په ساري ناروغۍ اخته وي.

۹۸- ځوي دې د هغه د ناروغۍ له خطره مه خبره وه.



الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

۹۹- الله تعالی ته پناه یوسه ، ځکه چې الله هغه هستي ده چې د چا په لاس کې چې د ټولو ناروغیو روغتیا او شفا ده .






الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

## ۹ د ماشوم کلتوري روزنې لارې چارې

۱۰۰- ځوي ته دې ځينې معماګانې او پزلونه وړاندې کړه.
۱۰۱- د ځينې تعبيري عنوانونو يا موضوعګانو د ليکنې غوښتنه ترې وکړه.
۱۰۲- هغه څه چې ستا ځوي يې ليکي تل يې د لوستلو کوښښ کوه.
۱۰۳- د هرې لغوي نحوي او ژبنۍ تيروتنې په وړاندې چې ځوي دې په کې ښکيليږي مه دريږه.
۱۰۴- ځوي دې لوستلو او مطالعې ته هڅوه.
۱۰۵- ماشوم ته اجازت ورکړه، چې هغه کتابونه او قيصې چې ماشوم يې غواړي په خپله خوښه ولولي.
۱۰۶- ځوي سره دې د کتاب په لوستلو کې يو څه ونډه واخله.
۱۰۷- بچو ته دی د زيرکتيا ځينې لوبې برابرې کړه .
۱۰۸- زوي دې درسي يا تحصيلي بريااليتوب ته وهڅوه.



الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

۱۰۹- ځوي دې داسې جوړ کړه چې په هغه خنډونو بر لاسي وي کوم چې د ده او د تحصيلي يا زده کړييزو پرمختياوو ترمينځ پيښيږي.

۱۱۰- ځوي دې د مخکنيو يا وروستيو خلکو د شعرونو او غوره ويناوو زده کولو ته هڅوه .

۱۱۱- د ځينې متلونو او مثالونو يادولو ته يې وهڅوه.

۱۱۲- ځوي دې د خطابت او وينا د هنر سره روږدي کړه.

۱۱۳- ماشوم د خبرو اترو او بل ته د قناعت ورکولو په هنر يې روږدي کړه.

۱۱۴- ماشوم ته د شخصي قابليتونو د ودې او نمو په دوره کې د ګډون زمينه برابره کړه .

۱۱۵- زوی دې له مورنۍ ژبې پرته د بلې مشهورې ژبې زده کړې ته وهڅوه.



الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

## ۱۰ د ماشوم د مکافاتو او سزا لارې چارې

۱۱۶- د ماشوم په روزنه کې د نېکۍ بدلې او سزا تګلاره استعمالوه.

۱۱۷- مکافات او انعام همیشه ورکوه خو تل بیا سزا مه ورکوه.

۱۱۸- د جایزې ورکولو په تګلاره کې بدلون راوله ، داسې چې تل باید جایزه نغدې یا مالي نه وي ، بلکې چکر یا سیل ، په کمپیوټر باندې د لوبو کولو اجازه ، ډالۍ ، او یا هم له ملګري سره بیرون وتل ټول جایزه کیدای شي.

۱۱۹- د سزا ورکولو په تګلاره کې بدلون راوله ، وهل باید تل د روزنې غوره لار نه وي ، په غوسې کتل ، کله کله په نرمه رټل ، د یوې ټاکلې مودې لپاره د هغه سره پریکون یا له ځانه جلا کول ، او همدارنګه د هغه ورځنۍ پیسو دیوې برخې څخه یې بې برخي کول ، او یا هم د هغه اوونیز سیل یا چکر څخه یې بې برخې کول ټول د سزا ډولونه دي.



الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

۱۲۰- مناسبه او برابره سزا د تیروتنې له تکراره او په تېروتنه کې له بیا بیا ښکیلیدو څخه ماشوم ساتي .

۱۲۱- په یاد ولره چې رسول الله صلی الله علیه وسلم هیڅ کله کوچنی وهلی نه دی.

۱۲۲- په لومړی ځل تېروتنې ماشوم ته سزا مه ورکوه.

۱۲۳- په سزا ورکول کې مه سخت زړی کیږه یعني ډیره سختي مه کوه.

۱۲۴- کله چې دې بچي ته سزا ورکوي نو د سزا لامل يې ورته څرګند کړه.

۱۲۵- ځوی ته دې داسې احساس مه ورکوه ګویا که ته هغه ته له سزا ورکولو خوند اخلی او یا هم له هغه سره یو څه کینه لري.

۱۲۶- ځوي دی د خلکو په وړاندې مه ووهه او همدارنګه د غوسې په دوران کې يې هم مه وهه.

۱۲۷- ځوي دې په مخ مه وهه ، او د هغه له توان څخه پورته سزا مه ورکوه.



الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

۱۲۸- کله چی دی ورسره ژمنه وکړه چی نه دې وهم نو بیا یې مه وهه ، تر څو په تا باور او بروسه ونه بایلي .

۱۲۹- بچی دې په دی پوهه کړه چی ته د هغه د خیرخواهۍ او فایدې لپاره هغه ته سزا ورکوی ، او ستا مینه له هغه سره تا دې ته اړ کوي.

۱۳۰- په دی یې پوهه کړه چی سزا د خوږولو یا دردولو لپاره نه ده بلکې د آدب لپاره ده.

په اخره کې د الله تعالی نه د هدایت ، سمې لارې او توفیق غوښتنه کوو.

زمونږ په خوږ پیغمبر دی د الله تعالی زیات رحمتونه او درودونه وي .

لاربنود علمي بنسټ
Larkhud Library

د رب العالمین څخه د ماشومانو په روزنه کې توفیق غواړم
او دا کم عمل د میزان په تله کې قبول غواړم .



الممسوحة ضوئيا بـ CamScanner

